# دکتاب پېژندنه

د کتاب نوم: ژوندي خيالونه
ويناوال: ډاکتر کبير ستوری
خپرندوی: د پښتونخوا د څېړنې مرکز، پېښور
چاپ نېټه: ۱۹۹۷ ع
چاپ شمير: ۵۰۰ ټوکه
کمپوز: ايشيا سافټ، پېښور ـ پښتونخوا
چاپځای: ليوال خپرونې ، پېښور ـ پښتونخوا

د انټرنيټ په مخ
کمپوز : نسيم خان ستوری
ترتيب : ايمل خان ستوری

کــبــیر ســتوری

Kabir Stori

# ژونــدی خــیالــونــه

# Jwandi Khyaloona

کال

۱۹۹۷ م

پیبنور

# ډالۍ

خپل درونډ مشر د پښتون قامی وحدت لاربښود محمد افضل خان « خان لالا » ته چې د پښتنو د يووالی او ابادۍ خيالونو ته ئې ژوند وربخلی دی خپل ژوندی خيالونه د زړه له کومی ډالۍ کوم.



په عکس کې کيڼ اړخ ته د عوامي نېشنل پارټۍ مشر چې ددې کتاب سريزه ئې ليکلې ده، مينځ کې د پښتنو د ټولنيز ولسوليز ګوند مشر چې دا کتاب ئې ليکلی دی او ښي اړخ ته د پښتونخوا قومي پارټۍ مشر خان لالا محمد افضل خان چې دا کتاب ورته ډالۍ شوی دی لــيــدل کــېــږي.


ډاکتر کبير ستوری

Dr. Kabir Stori
Kiebitzweg 12
50389 Wesseling
Germany (Deutschland)
www.kabirstori.com
E-Mail: stori@kabirstori.com

# سرلیکــــونه

# سـريـزه

# پـه تيـارو کې ځلانـده سـتوری

خـوک پـــه رضـــا د مـلـکـــه نـــه ځـــی
يـا ډيـر غـريـب شی يا د يار د غـمه ځی

ددی ليک په تندی ليکلی شوی لنډۍ يوه مشهوره ټپه ده، او تر اوسه پوری د پښتنی دنيا د زړه آواز دی، ماته نن د کبير ستوری په تعلق را ياده شوه.
زمونږ دا ستوری د کونړ د طبعي ښکلا د لمنی نه د جرمني د صنعتي تمدن د غر غور فضا ته رسؤلو کې د يار د غم ډيره برخه ده، البته يار ئې هيواد دی، ځکه ئې نن ټول ژوند يوه داسی روښانه هنداره ده چې په کې د ده د زړه، ذهن، فکر او عمل هر اړخ کې د وطن مينه او دملت درد جوت او تود (ګرم) ښکاري، که دی تحصيل (تعليم) کې لګيا وی که د روزۍ په تابيا مصروف وي، نو "دست در کار او دل با يار وي"، او چې دی دوران کې څه وخت پيدا کړئ هغی کې هم د نوي تمدن او تهذيب په مست او رنګين آزاد ماحول کې سيل، تفريح او مزی چړچی نه کوي بلکه د هيواد او ملت د پاره نول او زيار کوي ، د ذهن هر قوت، دقلم هر کش او د وخت هره شيبه (لمحه) خپل اولس کې که هيواد کې دی که بيرون دنيا کې ، د وطن د مينی او خدمت جذبه راولړزوي، ملي احساس پيدا کړي،دبيدارئ وينه ګرمه کړي اوتس نس غيرتي اولس نه د قومي وحدت يو قوت جوړ کړي.

چې د خپل جنت هسی وطن د کورونو او بهرنو غاصبانو د زپلو، لوټلو او خرابولو نه اوساتي او د زمکی په مخ تری په ربښتیا جنت جوړ کړي ، په دغه لیونۍ مینه او ریښتني هوډ په جرمني او یورپ کې هم ورځ او شپه لګیا دی د وطن والو د تیارؤلو ( آماده کولو ) راغونډولو او منظم کولو دنده ئې د عمر سره سمه خپله کړې ده، ددی د پاره ئې د هیوادوالو ذهن روښانه کولو او د مرام لاره رڼړولو د پاره ئې قلم هم د لاسه غورزولی نه دی او لرو بر پښتونخوا ته ئې هم ځان رسولی دی، تر خپله وسه ئې د ملي تحریک او ژواک خدمت کړیدی او کوي، تر دی چې د یو شاعر او انسان په حیث ئې احساس جمال د بشري حسن نه هم متاثر ( اغیزن ) کړی نو زمونږ په ستوري د ملي ژوند د ښایست د احساس چپه راشي او دی د ژوند په غرزو پرزو او د ادب او شعر په ذوق کې د خپلی خاؤری او اولس ترجمان شي، ریښتونی پښتون شي، چې د شعرونو دا مجموعه «ژوندي خیالونه» لکه د ده د نور شعري او نثري ادب زما ددی وینا ثبوت دی، هر څوک چې ئې لولي دا خوند او رنک به پکې ویني.
زه چې د خپل ښاغلي ستوری دا کتاب ژوندي خیالونه بیا بیا لولم، نو هر ځل پکې راته د ده د خپل ملې مرام سره د ژوری او عمري ( عمر سره سمی ) مینی خصوصا د سوچه پښتو او سپیځلي پښتونولی د غیرتي احساس او لیوني ترون داسی شعر و فن ښکاري چې په ښکلي رنګ کې د خاؤری، ننک او د وینی غورزنک د مثالي اشعارو رنګینه او حسینه جامه آغوستې وي، اوس چې دا څو الفاظ لیکم نو د خپلی رایی د ثبوت د پاره هم راته ډیر اشعار راوړاندی شول، خو زه چې خبره اوږدول نه غواړم نو هغه دلته نه لیکم او ددی کتاب په معنوي او ادبي اړخونو هم بحث کول نه غواړم،
« مشک آنست که خود ببوید نه که عطار بګوید»

المختصر زمونږ د مسافر ستوری دا کلام ژوندي خيالونه په پښتو ژبه، د پښتني وينی او مينی د پښتنو دننني او پروني زخمونو او صباني ارمانونو او پښتو او پښتونولئ د ژوند او مستقبل د پسرلي ورېمی دي.
دلته دده دا شعر ضروو ليکم چې د خوشحال بابا نه واخلی، د فخرافغان بابا او تر ستوری پوری د هر ننګيالي مشر کشر پښتون ارمان دی.

دا ستوری د پښتون د خپلواکئ به هله رونړ شي
چې واړه پښتانه په يو مرکز ټول شي جرګه شي

**اجمل خټک**

**اکوړه خټک، پښتونخوا**

**۸ اپريل ۱۹۹۷**

# د دعا

د مینې د ښمنان وا ړه مین او عاشقان کې !
یا ربه د انسان !
توان د محبت زړه کې پیدا د هر انسان کې !
یا ربه د جهان !
چې هر یو تن مین شي په انصاف او عدالت
د زور نه وي نفرت
سوله ارامي شي او ژوند ون وي د عزت
د هر قام او ملت
بنسټ او لسولي شي چې هر تن وي په امان کې !
توان د محبت زړه کې پیدا د هر انسان کې !
یا ربه د جهان !
چې نشت نوم د ښکیلاک او دزبیښاک شي په دنیا کې !
قایمه ورورلي شي
هر څوک په کار لګیا شي د ژوند ون په ارتقا کې !
پدی لار کې سیالي شي
شریک شي اولسونه ټول په ګټه او تاوان کې !
توان د محبت زړه کې پیدا د هر انسان کې !
یا ربه د جهان !
نقشه کې د نړۍ جوړه د ستورې پښتونخوا کې !
چې زړه د اسیا دی
توان د انفاق په پښتنو کې راپیدا کې !
چې لوی ارمان زما دي
بچی مې د وطن ټول د پښتو په لار روان کې !
توان د محبت زړه کې پیدا د هر انسان کې !
یا ربه د جهان !

## کــتــاب او قــلــم

کـــه وخــت راغــی ســر او مــال بـه کـــړم فـــدا
ســتــا پـــه مـیــنــه زمــا ګـــرانــی پـښـتــونــخـوا

ستـا پـه عـشق کــې چې عـــمری مــې دې ملــګـری
یــــو کـــتــاب او بـــل قـــلـــم اشـــنـــا زمـــا

## د ســـور پوښــانو دود

خـیال مـې ځـلمی دی او په فکر کې مـسـتي لـرمه
د نـوي ژونـد پـه مـیـو تـنـده مـاتـولـــی شمه

د خـوشـحـال خان قـلـم او تـــوره کې هسـتي لـرمـه
د بـاچــاخــان د ســور پـوښـانـو دود سـاتـلی شمـه

مـــلامـی تـــړلـــــی د وطـــــــن د ازادۍ د پـــــاره
د پـــښـتـنـو دابـــادۍ او ســـــوکـالـــۍ د پـــاره

# د ژوند چار

د ژوند په چار کې چا دنیا او چا عقبا واخیسته
چا د غم دروند پیټی په سر کړ چا خندا واخیسته

چا د نسیه حورو په تمه زاهدی غوره کړه
چا میخانه په اجاره د عشق دونیا واخیسته

چا په دولت باندې زړه بایلود زر پرسته شولو
چا پکې ښکلی خوښول او چا ښکلا واخیسته

چا پکې خیټه مړوله عشق ئې نه پیژندو
چا جانان غېږه کې راټینګ کړ چا لیلا واخیسته

چا د بېړیو د شرنګا نه سرودونه جوړ کړل
د خزان غېږ کې پسرلی د ژوند نه سا واخیسته

د کونړ ستوری پاس په هسک کې ځلیده ویل ئې
ما پکې مینه د پښتو او پښتونخوا واخیسته

# ارمان

تضادونه د ټولنی ارمانونه را پیدا کړي
ارمان مورد نظریو ده لوړ خیالونه را پیدا کړي

نظري چې اولسي شي سمه او غر شي خوځولی
د ارمان پوره کیدو ته غور ځنګونه را پیدا کړي

یاد د ټول قام د یووالي د پښتون د ننګ تاریخ دی
یاد امید دی د لیدلو دیدنونه را پیدا کړي

په ډګر د قامولۍ کې پښتون هله سیالي کړای شي
چې را ټول په پښتو شي خوزښتونه را پیدا کړي

کور زمونږ واک ئې پردی دی دا تر څو به وي تر کومه
غیرت څه شو چې خپلواک او خپل حقونه را پیدا کړي

اوو ښتون ذهنی پکار دی د قامي ژوندون لپاره
چې سیاسي تاریخ ژوندی کړي نهضتونه را پیدا کړي

عقل پوهه ستوری دواړه لوګی کړی له پښتو نه
چې ارمان د ازادۍ ته نوښتونه را پیدا کړي

# لــــــوړه

کــه افــغـان دی کـــه پــتـهـان کـــه رو   هـــيـلا
واړه نـــوم د يـــو پـــښـــتـــون دی بـــر مــلا

خـــولـــه اره د پـــښـــتـــون پـــه نـــوم يـــادېـــږم
دغـــه نـــور نـــومـــونـــه ايـــښـــي دي بـــــل چـا

پـــښـتـون اصـل نـور نـومـونـــه دي رنـــګـونـــه
دا د خــــان لالا افـــضـــل خـــــان ده ويـــــنــا

کـه پـه هـر رنـګ مـې ځـوک بـولـی و دی بـولـي
دې کـې خـوښـــه خـپـلـه خـپـلـه د هـــــر چـا

دا مــــې لـــــوړه د پــــښـــتـو سـره بـه مـرمـه
ستـوری نـه دی بـې پـښـتـو ژونـد تـه پـيـدا

# دازدی ګـــــلان

ګـــلان شـــته خـــو ډوب ولاړ دی اغـــــزو کـــې
پـــیـغلـې غـواړي چـــې ئـــی و ټـومـبـې کمـخـو کـې

ځـــلـمـی اوس دی امـــتـــحـان د مـــیـنـې اخـــلـــــی
پـــاتـې رانـه نـــه شــــی د ګـــلـــو پـــه راوړو کـــې

کـــــــه ګـــلان دازادۍ راوړی ځـــــــــلـــــــمـیـه
بـــیا پـــیـــغـلـی یـــادوي دې پـــه مـــســـرو کـــې

د مـجـنـون لـیـلا کـیسی بـه خـلـک پـریـږدی
سـتـا د مـیـنـې کـــیسـی کـېږی بـه حـجـرو کې

پـــلـوشـــی بـــه داسـمـان سـتوري خـپـرې کـړی
رنـــا ئـــی بـــه شـی د ژونـــد پـه تـــــروږمــو کـې

## ډکــی پــــیـمـانـــی

تا چې د سرو شونډو قلنګ کې بهانې پریښودې
زه ستا ملنګ شوم ما د ټول چم میخانی پریښودې

ستا د اوربل لاندې مې جوړه کړه دیره د مینې
دعشق نشو کې مې د مینې خزانی پریښودې

مجنون لیلا نه لاس په سر شو چې ئې ته ولیدې
بلبل هم بڼ کې د ګلونو ترانې پریښودې

چې ستا د سپین مخ په رڼا باندې ئی زړه بایلو دو
پتنګ د شمعې سره نورې یارانې پریښودې

چې ستا د تورو زلفو سوری ئې په زیره پریوت
شیخ په ثنا کې دې د حورو افسانې پریښودې

ستا عاشقان مې رقیبان شو خو ما وګټله
د مینې ننګ کې د پښتو مې نښانې پریښودې

چې ستا د خولی د میو خوند مزه ئې وڅکله
ستوری ساقې ته ډکې پیمانې پریښودې

# د میـــرویـــس بابا پګړی

بچـې دې د پښتـون ږ یـر شي که لروي او که بر
هر ګوټ کې دې پیدا شي د خوشحال نیکه لښکـر

د پت ښیګـړی تـوری وروړولی ئـې جـــوړه ختـه
په ننګ کې ئــې اښکلی د پښتـون هــډ او تـبر

پښتـو او پښتـونــوالی ورونـی کې ئې ونـغـاړه
ای پــلاره د میرویـس بـابا پــګـړی کـړه ورپسر

چې سـر ټیـټ نکړی غیر تـه ازادی سندری وائـی
اوتـــورې د ښکـیلاک تـه ئې سینه وی لکـه سپر

د توری او قلم خاوند چې هر پښتون بـچـــی شي
نـو هـلـه بـــه روښــانـه شي بـیا ســـتوری د سهر

# يــورپــی پــېــغــلــه

دا ده يــورپــی پــېـغـلـه پـری ئـې ږده چـې څـه کوي
قـيد پابندی نـه مـنـی هـر څـه پـــه خـپـل زړه کوي

ستـا پـدی کې څه کـار دې بد کوي کـه ښــه کوي
جـوش د مـيـنـې تـن کــې شـتـه چـيرتـه الـوتـه کوي

الــوزي بـــه کـــوم پـلـو چـيرتـه بـه د مـــه کـــوي
چـا تـه بـه بـيا وخـانـدي چا غـبـږ کې به شپه کوي

چـا تـــه بـه ورغـاړه شـــي چـا تـه بـه کـاتـه کـــوي
ســتــوري تـه هـمـدا بـس دې تــش چې تماشـه کوي

# تورتم او رڼا

د تضادو جوړه شوی دا دنیا
د رڼا وجود تورتم نه دی پیدا

تیاری نښه د رڼا د موجودیت ده
که تورتم نه وی نو به وی رڼا

که غم نه وی خوشحالي چیری نه وی
خوشحالي شته ځکه غم شته دی اشنا

غم پسی د خوشحالۍ راتګ جبري دی
دا سی شپه نشته چې نه ئې شته سبا

دا تیاری د ژوند ورکیږي سبا کیږي
د سبا ستوری راخیژی خامخا

# د قــام بــچـــی

پـښـتـوکـوی پـښـتـونـولـی د قـام بـچـو کې شته دی
پت او ښیګړه ، توره او ورورولی پښتنو کې شته دی

پـښـتـانـه یـــو دي یـو تـاریـخ او یـو کـلـچـر لری
یـوه ئـې ژبـــه ننـګ پـښـتـو ئـې هـر تـبـر لـری

د غـیـرت نـښـی د مـشـرانـو پـه شـملـو کـې شـتـه دی
پـښـتـو کوي پـښـتـونـولـی د قـام بچو کې شتـه دی

پـښـتـون قـامـونـود دنـیا کـې پـخـوانـــی قـام دي
وتی ئې نوم دي ننـګلـیـالـی او مــــیـړنـی قـام دی

د ازادۍ مـیـنـه ئــې ویــنـی د رګـو کـې شـــتـه دی
پـښـتـو کـوی پښـتونـولـی د قام بـچـو کـې شـتـه دی

مـیـلمه پـالـنه ئې صـفـت ده لـوی د یــری لـــریـنـه
په ټـنګ ټکـور مـنګی رباب تـودی حجـری لـریـنـه

رښـا د ژونـد ئـې د هـسک ستـورو پـلوشو کې شته دی
پـښـتـو کـوی پـښـتونولی د قـام بـچـو کې شـتـه دی

# یارانی

ته لا خبر نه ئې چې دی څه وکړی کانی
پریږده دا خبری نورد تیری زمانی

کې ایږده موزیم کې چیری بیا وروسته پکار به شی
اوس نه پکا ربږي نوی شوی ترانی

مه یادوه ماته دې د یار د غیږ مزی چرچی
جوړی د قام قتل ته وی دغه یارانی

نشته قاتلانو د ملت ، ته په اولس کې ځای
جوړی که خپل جرم ته هر څومره کړی بهانی

چا چې ابادئ په نوم ودانه دنیا ورانه کړه
څنګ به کړی ابادی ستوری ورانی ویرانی

# پسرلی

خوښ مې پسرلی دي ځکه ټولو موسومونو کې
ښنې جامې اغوستې طبیعت وي سمه او غرونو کې

وخت که دځوانۍ دکال وي دائی دځوانۍ وخت دي
ژوند او ځواک پیدا شي ونو بوټو په رګونو کې

ځوان د مین زړه شي هم ئې فکر په ځوانۍ راشي
ځانګې د ګل ځانګو کې د زلفو په تالونو کې

مست شي بلبلان په باغیچو کې میلې جوړې کړي
ګرمې ترانې د بلبلانو وي بڼونو کې

ستورې ئې د سترګو په کمره کې عکاسي کوي
رنګ د یارد شونډو وینې پاڼو د ګلونو کې

# نوی نغمی

چې دی شونډی زما شونډو ته نژې شوې
رانه پاتی پیمانې د میخانې شوې

ستا د سروشونډو په میو چې شوم روږدی
نوی ژوند ، نوې رباب ، نوی نغمی شوې

نوې شوه د ژوند نغمه نوې سندری
ارادې مې شوې غښتلې پښتنې شوې

زړه مې مست شو خیال مې وسپړل ګلونه
هره خوا د پسرلي خوږې وږمې شوې

چې د ستوري نه ئې فن د مینې زده کړ
په پښتو هم د بلبلو ترانې شوې

## غنی

هم سیاسی، هم ادبی، هم فلسفی دی
دا اتل د پښتونخوا نوم ئې غنی دی

غنی کړی خدای هنر او په ادب کې
د پښتون ځلمی سیاست کې نوښتی دی

فلسفه کې د ځان ورک شي لیونی شی
بی پروا دی رښتیا وائی رښتونی دی

## ملی تړون

د باچا خان په لار روان ملی تړون دي زمونږ
پښتو عزت، پښتو ایمان، پښتو قانون دي زمونږ

تور ځنځیرونه ماتوو لوی پښتونخوا جوړوو
فکر پښتون، احساس پښتون، عقل پښتون دی زمونږ

د پښتون فکر زلونو کې څوک تړلی نه شي
ازاد پیدا دي غلامۍ کې لویدلی نه شي

# هوښيار ليونی

ځانته وائی ليونی چې ډير پوهيږي
غنی و او سايل هم ليوني کيږي

د هوښيار ليوني دا کره خاصيت دي
چې ځنځير د پابندی شلوی بيليږي

ليونتوب ئی وسيله د ازادئ ده
ليونو ته ځوک څه نه وائی غريږی

د پښتو د ادب پلار اجمل ختک هم
د ژوندون د ارتقا جنون خوښيږي

ستوری هم پابندي نه منی باغی دی
اوسی ځمکه کې اسمان کې پاس ښکاريږي

# شـــــنـــی غـــوټـــۍ

شـنی غـوټۍ د څانګو په سرو کې ټوکیدلی دي
ښکاري د انډوک سونډوک سیلۍ ونی شاربلی دي

نور به پسرلی وی د ژوندون ناوی سینګار به شي
تللي بلبلان د بڼ په لــــــوری الـوتلی دي

بیا به جونی څڼو کې ګلان د ازادۍ کېږدي
ویښ دي غیرتونه او ذهنونه او ختلی دي

جوش د قام د مینی د ځلمیانو په رګو کې شته
مستی ولولی د قام ولــــۍ راپاریدلې دي

ســـتوری د قلم پـه څوکه کـر ، د خپلواکۍ کوه
چا چې څه کرلي هم هغه څه ئې ریبلې دي

# باغـي د نـيا

تخيل باغي دنيا ده پابندي نه شته په چا
هلته فکر بندي ندي ، الوتى شي په هر خوا

زه چې تنګ شم له غمونو تخيل ته وتښتمه
هلته ګرزمه بې غمه له غمونو بې پروا

ټال د زلفو ځان ته جوړ کړم ځنګوم پکې فکرونه
راولم ملي يووالى جوړومه پښتونخوا

سپيلنى شم د وطنه د پښتو پسرلى جوړ کړم
د ژوندون تيارى شي ورکې روڼ شي ستورى د سبا

# زیری

ذهنونه او ختلی د حالاتو رنګ بدلیږي
څه نوی شان خوزښت دی غیرتونه راویښیږي

د ژوند د بی وسی تورې تیاری په ورکیدو دي
پښتون په یو مرکز د قامولۍ باندي ټولیږي

ملی غرور او حس د پښتونوالی ژوندي شوي
غوټۍ د ارمانونو غټې شوي دي غوړیږي

نسیم زیری راوړي د خوشحال بابا دیري ته
بیرغ د خپلواکۍ د پښتنو جګ شو رپیږي

دا ستوری د اسمان ورته رڼا کوي ولاړ دي
نقشه کې د نړۍ د پښتونخوا نوم لیکل کیږي

# غم کم خوشحالي ډېره

جانانه نوری دا سپیری ورځی د غم تیریږي
د خوشحالۍ ورځی راځی زمونږ په چم تیریږي

بیا به په وچو شونډو وار د خنداګانو راشي
په رقیبانو زلزله به په هر دم تیریږي

ژوند یو څو ورځی په دنیا دی ابدی خو نه دی
بده ده دا څه په ښادۍ څه په ماتم تیریږي

منم احساس د خوشحالۍ د غم وجود نه پیدا
خو که غم کم خوشحالی ډیره وی ژوند سم تیریږي

ستوری ښه دا ده چې په نیک نوم د چا یاد پاتی شي
که خوشحالی وي او که غم وی نو دا هم تیریږي

# د سبا رڼا

چې د غم په کور غوغا شي
خوشحالی مونږ کره راشي

د ښکیلاک تیاری شي ورکې
رڼا سپینه د سبا شي

لراو بر پښتانه یو شي
او ازاده پښتونخوا شي

د پښتون چمن زرغون شي
او غوټۍ ئې په خندا شي

ستوری وائي چې بیا هله
به پوره ارمان زما شي

## پــښتــو نــخوا ســتا اتلان

نــه پـــوهــيږم چې په کوم يـوخه ولـيـکـم
پـښتـونخوا ستـا اتــلان بــې شــماره ډيــر دي

ولی خــان اجـمل خــټک کـه افــضل خــان دي
واړه ستـا پــه مــينه مــست لــه ســره تــيـر دي

کــه دا ســتا ټـــول اتــــلان زه يـــــادومـــه
لـوی کـتـاب بــه د نــومـــونـــو جـــوړومـــه

غـنی خـان پـه نـوم ئـې دلــتـه بـس کــومـه
د اربـــاب ســـکـــــندر يـاد تــازه کـــومـــه

## د طبیعت قانون

خپل عمل د لاری مل د هر انسان دي
که ښوک ښه شي او که بد شي د خپل ځان دي

چې ښه وکړی هغه ښه به ریبی بیا
دا قانون د طبیعت ددی جهان دي

هر ښه درومي پاتې کیږي صرف یادونه
یاد ژوندی د ننګیالیو د کاروان دي

ننګیالی د تاریخ نه مري تل ژوندي وي
که میرویس که احمد خان که باچا خان دي

ما کبیر ستوری خاپوړی په کې کړي
ازادی د پښتونخوا مې لوي ارمان دی

# د هنر ځولی

جرګه ځم کور په کور د قام ځلمیان راټولوم
ملي وحدت د پاره عاشقان راټولوم

پګړی د ننګ غیرت چې د نیکونو په سر کړي
بچي د میرویس خان او خوشحال خان راټولوم

خدمت کې چې د قام او دوطن نه ستړي کېږي
د توري او میړانی جوړ ځوانان راټولوم

د فن هنر ځولۍ چې قامولۍ باندې سینګار کړي
لیکوال هنرمندان او فنکاران راټولوم

د ستورو قافیلی چې ورسه هسک کې بدرګه ځی
ډولی دازادۍ ته ننګیالیان رټولوم

# د ژوند راز

دا فلسفیانو فلسفو کې شته
تمه د سبا تورو تیارو کې شته

ژوند چې شئ ژوندی غم ئې ملګری شي
مړي نه کړي غم ، غم په ژوندو کې شته

شرنګ د زلونو ئې سرودونه شي
خیال د ازادۍ چې ئې مغزو کې شته

رسی به منزل ته خامخا د ژوند
ځواک د حرکت چې ئې پښو کې شته

راشه چې د ژوند په راز دې پوه کمه
راز د نوي ژوند ستورې شعرو کې شته

# مـــیــــره د ښــــایـــســـــت

خــــوب کـې مــې بــیـګـا د ازادۍ نـاوی لــیـدلـی وه
ځـــانــــتـه مې ډیـوه د نـوی مــیـنـی لـګـلـولـی وه

زلـــــفـی ئــــې ټـالــــونـه بــــهـارونــه و وږمــی وی
شـونـډی ئـې ګلـونه و خـونــدونـــه و خــــوږی وی
سترګو کـې رنګــونـــه و، رازونـــه و، درنــــی وی

مــیـره د ښـایـست وه ټولـو ښکلو کې ویـاړلی وه
خــــوب کــې مـې بـیـګـا دازادۍ نـاوی لــیـدلــی وه

ژونـــد د خــپـلـواکـۍ و د یــووالـی پـه نـغـمو کـې
ســـاز او ســـرودونـــه و دیــــرو د پـــښتـنــو کــې
ګـرم اتـڼونـه وخـوشـحـــال بـــابـــا حــــجـرو کــــې

ســـتوری **خـپــل** قـلـم تـه د غــیـرت شـمـلـه تړلی وه
خــوب کـې مې بـیـګـا دازادۍ نــاوی لــیـدلــی وه

## د سرېښتوب تول

زه پښتون یم پښتنی زما جهان دي
سر او مال مې د پښتو ځنې قربان دي

په پښتو باندې ژوندې په پښتو پایم
پښتو ننګ پښتو غیرت پښتو ایمان دي

چې پښتون وي خامخا به پښتو کاندي
پښتو تول د سرېتوب عزتاو شان دي

په پښتو کې ارزښتونه د ژوندون شته
د ژوندون ستوری پښتو په لار روان دي

# د مېنې لوظ

غلی ئی وکتل مسکی شوه لاړه
د کوڅی ګوټ کې راته وه ولاړه

د مینی لوز کې راتېنګ کړمه
چکر ته ووتو د سیند په غاړه

ما ویل ګودر د سرکانو مې یاد شو
دی ویل کله به ځو هلته دواړه

د زلفو بارئې له وږو نه کوز کړ
یوه شیبه چیرته په چرت کې لاړه

بیا شوه راوړاندی راته غوږ کې وویل
سوچ ډیر ضروردی د وطن په شاړه

د قام وطن نه سپلنی دی کړه ځان
ستوری په عشق کې سر ساتل مه غواړه

# د مېنې لارې

چا ويل چې د مينې لارې ورانې دي
درومې قافيلې پرې ور روانې دي

زه د نسيه حورو مين نه يمه
خوښې زما نغدې سوداګانې دي

زه يم د وطن په ازادۍ مين
لوړې سردرې ئې په ما ګرانې دي

وينه کې مې پت شته دې پښتو شته دي
پاتې له نيکونو مې ميراني دي

جيګه به شمله د خپل نيکه ساتم
ټينګې ارادې د ستورې ځوانې دي

## پاڅېږه پښتونه!

پاڅيږه پښتونه نن د قام او قامولي وخت دي
پرېږده تربګنۍ د اتفاق او ورورولولۍ وخت دي

وګوره قامونو د دنيا ته چې ازاد شولو
واک ئې خپل راخپل کړلو په خپل وطن کې ښاد شولو

خپل جنت وطن کې پښتانه خوار او برباد شولو
واک اختيار ئې نه شته وږی تږيي بې سواد شولو

دا حال بدلول غواړي نږۍ کې د سيالۍ وخت دي
پرېږده تربګنۍ د اتفاق او ورورولولۍ وخت دي

دا پښتنه خاوره پښتنو مونږنه پښتو غواړي
ننګ غواړي غيرت غواړي ميړانه د نيکو غواړي

بيا د خيبر سر کې جګول سر د شملو غواړي
نور د خوشحال خان توره تيره په شرنګيدو غواړي

جوړه پښتونخوا کړۍ د قومی اولسولی وخت دی
پرېږده تربګنۍ د اتفاق او ورورولولۍ وخت دي

اوس چې مونږ پانه څو ستورى وائی چې ورکيږو مونږ
بيا که چيري پاڅو نو منزل ته نه رسيږو مونږ

نه کړي انتظار د وخت کاروان ترې پاتې کيږو مونږ
پاڅيږه پاڅيږه دې کاروان سره مل کيږو مونږ

نور خیالونه پوچ دی د پښتو پښتونولۍ وخت دي
پرېږده تربګنۍ د اتفاق او وروروولۍ وخت دي
پاڅېږه پښتونه نن د قام او قامولی وخت دي

## د پښتونوالی حس

چې مین څوک په وطن وي تری نه زار شم
چې د قام په درد درمن وي تری نه زار شم

چې ئی حس د پښتونوالی وي په زړه کې
که زما د سر دښمن وي تر نه زار شم

# د ننګ شمله

څنګ به ښه وي څنګ به ښه وي
پښتونخوا کې چې میشته وي
په پښتو باندې هر څه وي
کاڼي بوټي پښتانه وي
پښتونخوا کې چې میشته وي

په پښتو باندې ویل وي
په پښتو باندې لوستل وي
په پښتو باندې لیکل وي
هسکه مې د ننګ شمله وي
پښتونخوا کې چې میشته وي

جوړ ځما ملي ګلشن وي
واک اختیار مې د وطن وي
زرغونه ځما چمن وي
خوښ خوشحال به ستورې زړه وي
پښتونخوا کې چې میشته وي

## د مینې فن

د مینې فن کې مې نیستي نه مخه ښه وا خیسته
د قسمت ویش کې مې په برخه میکده وا خیسته

زړه مې زلمی شو او نشه مې په مستي راغله
چې مې د قام په مینه ډکه پیمانه وا خیسته

د ازدې د لیلا تږو ته ساقي شومه زه
د تږو تنده ما تول مې په زمه وا خیسته

د میو سیند مې د لیلا منګې د پاره جوړ کړ
د ګودر غاړه مې ریبار ته اجاره وا خیسته

د لیلا مینه کې مجنون د پښتو ستوری شومه
د خوشحال خان قلم او توره مې تیره وا خیسته

# بلبل

انتقاد چا په بلبل باندې کولو
ویلی ستړی ئې کړو ځان پدی بدلو

ما ویل ته د ژوند د رازه څه خبر ئې
نه پوهیږې د عشق اور کې په سیزلو

که بلبل په شان په ګل باندی مین شې
بیا به شپه او ورځ لګیا ئې په غزلو

که د مینی د مۍ څښل د ستوري زده کړې
انتقاد نه به لاس واخلې د بلبلو

# د مینې مور چل

څوک چې په دارد تورو زلفو ځنګیدلی نه شي
هغه د مینې په رازونو پوهیدلی نه شي

د لونګین په لړ ختل چې ورته ګران ښکاریږی
په مې د شونډو باندې تنده ماتولی نه شي

د مینې جوړه ده دنیا په مینی ښکلی ښکاري
بې مینې ژوند څه دي په ژوند حسابیدلی نه شي

د وطن مینه کې لوګی او سپلنی چې شي څوک
هغه مین د قام د یاده نه وتلی نه شي

ستوری د مینې مورچل نیسه که مین ئې رښتیا
ګنی لیلا د ازادۍ کور ته راتللی نه شي

# رسوا مینه

زما وینه پښتنه، پښتنه ساده
پښتو پت پښتو غیرت ابرو زما ده

د پښتو مینی په تور مې که څوک وژنی
زما سل ځله پری خوښه او سلا ده

زه به مړ شم نظریه مې نه مړه کیږي
خوره شوي چې په ټوله پښتونخوا ده

رسوا مینه پټولی ستوری نه شي
د پښتو سره ئې مینه بر ملا ده

# ســـتوری ســـتومـانـــی

کــه د ژونـــد خـــبری هـر څـومـــره تـربـښـــې شــي
چـــې دا سـتـا د شـونـډو رنـګ واخـلـي خـوږې شي

چـې مـسـکــی شي جــهـان واړه پــه خـنـدا شـي
خوشحـالـی شـي ورکــې تـولـی اندیښـنـی شـي

مسـکــی اوســه چـــې د غـــم پــه کـالــه غـــم وي
پــه مـــنــګـي او پـه رباب تــودې حـــجـرې شـــي

لـــږ قـلـنـګ د سپـینـــی خـــولـــی د مـــیـو راکـه
چي بـې خونــده راتــه مـــې د مـیـخـــانـــې شـــي

د اوربــــل د ســـــیـوري لانــــدې ئـــې اوده کـــه
چــې د ســـتوري ســـتـومــانـــي وزي د مـــې شـــي

# لویه فلسفه

فلسفې به د دنیا راټولومه
د پښتو او پښتنو والي زارومه

دا زما پښتونولی لوی فلسفه ده
څه حاجت د فلسفو نورو لرمه

د پښتو پښتونولۍ په لار روان یم
پدی لاره به تر عمره پوری ځمه

د جرګو سیستم خو، ښه اولسولی ده
دا سیستم به د جرګو پراخوومه

دا زما د عزت پت او ننګ قانون دي
د جرګو پریکړه په سر سترګو منمه

چې تمامه پښتونخوا پری شي خوشبویه
هری خواته د پښتو ګلان کرمه

ستوری تا که پسرلی د پښتو جوړ کړ
بیا شمله د ننګ به جګه وترمه

# ولې څه دی څه د پاره ؟

خـــدای دې نــه کــړي بـې هـدفـه بې مرامه ژوند د چا
بې هدفه بـې مـرامــه ژونـد کـې نـشـتـه دی مـانـا

ولـې څـه دی څـه د پـاره ؟ دا پـوښـتـنی خوتـل کېږي
یـو عـلـت د پـیـښـې ګوری بـل هـدف غـواړی لـه تـا

کــه ځــواب ئــې ورکــوې شــي راتـــه وواېـه دواره
ولی څه لـه څـه دپـاره ؟ پـیـدا کــړی خــدای دنـــیـا

پیدا کـړی ئې ده غم تـه کـه خوښـي هم چیرې شته دي
زه چـې ځــوک پــه ژړا ویـنـم مـالـه هــم راځــــی ژړا

زه د غــم مـلـګـری نه یم خوشحالۍ سه مې دوستي ده
د ژړا نـــه مــې زړه تــور دی راتــه وخــانــده اشـــنــا

دا غـــمـونـه بې حد ډیر دي غم په وار بـه ئــې کـوومــه
راتــه وخــانــده خــنـد بـږه چــې زه هم شم پـه خـنـدا

پــه خـنـدا پــه خوشـحـالـیـو د مـنـزل پــه لـوری ځمه
ســتـوری نه دی بې مرامه بې هدف ژونـد تـه پـیـدا

# خوښه

که د چا دا او د چا دا خوښه ده
ځما د قام خپل ارتقا خوښه ده

که څوک پردو په غلامۍ نازيږي
ځما ازاد ژوندون فضا خوښه ده

که څوک د سرو شونډو خوبونه ويني
ځما په ويښه مشغولا خوښه ده

که څوک د زلفو خيالي ټال جوړوي
ځما رښتيا په ټال ځنګا خوښه ده

که څوک نسيه حورو په تمه ناست وي
ځما دا لاس په لاس سودا خوښه ده

که څوک عقبا کې عشرتونه غواړي
ځما خوشحاله دا دنيا خوښه ده

که څوک يورپ کې په بنګلو کې خوښ وي
د ستوري خپله پښتونخوا خوښه ده

## نـــوی ســـوچ

ســاز چې ارمـونـيـه رباب دوکړو سره يو ځای کړله
قـام وطــن او مينه مې پـښـتـو سـره يـو ځـای کړلـه

جـوړه مـــې نــغـمـه د ازادۍ کــــړه غـــړو مـــه ئـــی
ناوې مې د ژوند د قام ځلمو سـره يـو ځـای کـړلـه

دا د فــن لــمـن بـــه ډکـــو ومـــه د پـــښـتـــو ځـــنــی
مـا چې پـښـتـونـوالـه د مسرو سـره يـو ځـای کـړلـه

نـــوی وده نـــوی ســـوچ او انـــد غـــواړي
پـوهــه مـې د ســر د زړه جـذبو سره يـو ځــای کـړله

رســـي بـــه مـــنـــزل تــــه قـــافـــيلـــی د ژونـــد
ســـتورې چې رڼا تـورو تـيـارو سره يـو ځـای کـړلـه

# دزلونو شرنګهار

خیال مې ځلمی دی تورو زلفو نه ټالونه جوړی
د ټال ځنګا کې د ژوند ناوی ته خالونه جوړی

د پښتنو دیری حجری په ټنګ ټکور تودوی
منګی رباب کې د ژوندون نوی سازونه جوړی

د وطن پیغلی چې اوبه تری د قام تږو ته وړی
د ګودر غاړی کې منګیو قطارونه جوړی

د پښتونخوا دازادۍ او سوکالۍ د پاره
د اتفاق او د یووالي غورځنګونه جوړی

د فن لمن چې د غیرت او د پښتو ډکه وي
هغه لیکوال هغه فنکار ته ګل هارونه جوړی

ستوری تورتم رڼا کوي په پښتني سندرو
د زلونو د شرنګاهار نه سرودونه جوړی

# ګــنــاه د ازل نـــده ؟

ګـنـا د ازل نـــده هـــسي تـــور دي پـــرى لـــګـــيـــږي
خـــبـره د حـــالاتـــو ده پـــدي کـــه ثـــوک پـــوهـيـــږي

انـسان خو له ازلـه بـد بـــخـــت نـه دي پـــيـدا شـــوي
بـد بـخـتـه ئې حالات کړي بد قسمـــتـه شـــي کـرېـــږي

چـې زړه دي وکـه زړه نـو بـــد لـــولـــى شـــى حـالـــت
حـالات چـې شـي بـد ل قـسمت پـخـپـلـه بيا بدليږي

هدف که دي قسمت خـپـل بـدلـول وي مـتـې نـغـاړه
بـرکـــت دى حـــرکـــت کـــې دا مـتـل دلـتـه چـلـيـږي

ډيـــوه د ذهـن بـله کــه هـــد ف پـــه لـــورى درو مـه
هد ف چې ژوند کې نه وي ژوندون مړاوې شي وچيږي

امـيـد د هد ف سـاه ده پـه امـيـد بـانـدى ژونـدى دي
امـــيـد د ســـتـــوري شـتـه دى چې پـښـتون به ازاديـږي

# د ژوند سا

ژوند چې وي ژوندی له حرکته بیلیدي نشي
مرګ هغه ژوندون دي چې له ځایه خوځیدي نشي

سا د ژوندي ژوند په حرکت کې مالید لی ده
بې له حرکته ژوندون نشته ژوند کیدی نشي

ځکه دا منم چې حرکت کې پروت برکت دي
ګرزنده ګیدړ بشه له زمری چې پاڅیدی نشي

مه دریږه روان وسه هدف ته به رسیږي ته
هغه ډ نډ خوسا شي چې اوبه ئې بهیدی نشي

څوک چې خپل قسمت د بد لید و اراده نه لري
لیکه دازل ئې به خپل حال وي بد لیدی نشي

برخه د قسمت که بد لوی نو پسی وګرزه
ورکه پسی نه شي لیلا غیږی ته راتلی نشي

دادی حرکت ستوری د ګوتو د قلم نه دي
ګینی دا قلم ځانته پخپله څه لیکی نشي

# د پښتنو لار

مینه مې د ښکلو هم په سر ستر ګو منلې ده
خو مینه د وطن مې ټولو مینو کې ښاغلې ده

مینه خو یو حس دی د جسمونو پیوستون ندی
زړه د مینې کور دی مینه زړه کې غوړیدلې ده

وینه مې په زړه کې د وطن په مینه مسته ده
تن کې مې جذبه د قامولۍ راپایدلې ده

سوچ کې مې وربمه د ازادۍ او سوکالۍ شته دی
ملا مې د پښتون سیاسي یووالي ته تړلې ده

ځمه د یار غیرت ته بې پروا د ګړنګونو نه
مینه پښتنه مې په ځوانۍ باندې راغلې ده

ژوند به شي ځلمی د ازادۍ ناوي به راولم
لار مې د نیکونو د پښتو ورته نیولې ده

ستوری د سبا یمه ځلیږمه د غرو په سر
ژوند ته پلوشه د پښتونوالي مې شیندلې دی

# مستي

دا مستي د ميو نه ده د ځوانۍ جوش پاريد لی
که په ميو کې مستی وی نو دا خم به ګډيدلی

مستی نوم د حرکت دي حرکت نوم د ژوندون
چې روان وي حرکت کړی دا سي مړی چا ليدلي

په مستيو اتڼونو د منزل په لوری ځمه
ورک هغه دي په نړی کې چې مستي نه وي لويدلی

د مستۍ نه به وانه وړم حرکت کوم خوځيږم
ځوک چې تللی او روان و، دی منزل ته رسيدلی

د پښتو په مينه مست يم پښتونواله مې ژوندون دی
رښا ستوری د پښتو يم په کونړ کې ځيريدلی

## منګی رباب

غم به د ټولو پښتنو کوو
مونږ په پښتو خپله پښتو کوو

مونږ د ژوند چاری په پښتو سموو
پښتونولی په سمه غرو کوو

چې د ازاد ژوندون پیغام راوړي
لته د قام د ننګیالیو کوو

د ننګه ډکی چې اسمان ته رسي
ویاړ د مشرانو په شملو کوو

منګی رباب مو د حجرو سنګار دي
میلمه پالنه په لیمو کوو

د ژوند تیاو ته چې رڼا بلوي
پام به د ستوری په مسرو کوو

# لــوړ خــيــالــونــه

خـيـر دی اوس به دی اوده کړم د خيالونه په ځانګو کې
لـوړ خيالـونه نه ورکـيـږی د ژونـدون تـورو تـيـارو کې

چې د غـم په کـالـه غـم شي خوشحالی مونږ کره راشي
د وحـد ت ګـلونه ګـل شـي او ازاده پـــښـتـونخوا شي

بـيـا بــه تــا زه ګــرزومـــه د کـــونــړ پـــه سردرو کـــې
ته زمـا بـه مـيـلـمـنـه ئـې د خـوشـحال بـابـا حـجـرو کې

هـری شپـی پـسـی ورځ شته دی دغه شپه به هم سبا شي
سـبـاوون ته وخـت ډيـر نه دی دا تياری بـه ژر رڼـا شـي

بيا بـه ټـنـګ ټـکـور وهـمـه د رحـمـان بـابـا ديـــرو کې
د سبا ســـتـوری رڼا کـې د پـښـتـو ملـی نـغـمـو کـې

# د سمت برخې فلسفه

ډېر ځل سمت زيات دی خپلو برخو مجموعه نده
جوړه د رباب د څو غږونو نه نغمه نده

زه خو دا نغمه په ارمونيه کې هم وهلی شم
هم ئې د سيتار بم زير پردو کې اړولی شم
هم ئې په شپيلۍ او سورنی کې غږولی شم
دا خو د سيتار پينځو تارونو زمزمه نده
ډېر ځل سمت زيات دی خپلو برخو مجموعه نده

دا نغمه چې وغږيږی زه ئې پيژندلی شم
هری يوی الی د موسيقی نه ئې بيلولی شم
برخو نه سمت په جمعه کله جوړولی شم
دا د سمت برخو د اړيکو اندازه نده
ډېر ځل سمت زيات دی خپلو برخو مجموعه نده

دا د سمت برخی قانون ټول ژوند کې چليږی
ډله هم د خپلو غړو شمير ځينی زياتيږی
تش د څو کسانو غونډه ډله نه نوميږی
دا د سمت برخی فلسفه ده سفسته نده
ډېر ځل سمت زيات دی خپلو برخو مجموعه نده

## د ښایست معجزه

ما چې سوچ دا ستا په تور پیکي کولو
راسره نه و الفاظ ئې د ستایلو

خوشبو ئې د پښتونوالي تر نه درومی
حاجت نه لری د عطرو د وهلو

پیدا کړی د ښایست خدای معجزه ئې
سترګی کله دې مړیږي په لیدلو

چې د ستوري سترګی ستا لور ته کړی شوی
مزه ورکه شوه بل خوا ته د کتلو

# نوی فکر

نوی فکر نوی هیلی بدلوی دا زمانه
زړه مینه شوله ځوانه نوی شوله یارانه

د ذهنونو اوښتون دی غیرتونه راویښیږی
بیا به شي تمام جهان مې د غیرت په ننداره

اغزی په ګل بدلیږی خوشبوی د قامولۍ کړی
بلبل ځان دی سینګار کړی نوی وائی ترانه

بلبلان د پښتو ژبې د ملی وحدت چمن کې
نوی نوی غزل وائی نوی نوی افسانه

د ژوندون تیاری خپریږی د سبا ستوری راخیژی
خامخا به زرغونیږی د پښتون قام ویرانه

## قام

قام ملت خو کلتوری ده استلا
چیری نه دی نژدی ملت پیدا

په نژاد که ملتونه جوړیدی شوي
اوس به وی یو لوی ملت د اریانا

یا به واړه انسانان صرف یو ملت وی
چې بچې دی د ادم او د هوا

تش په وینه باندی څوک نه پښتون کیږی
چې له خپل کلتور او ژبې وي جدا

چې پښتو او پښتونواله په کې نه وي
پښتون نه دی ستوری وائی بر ملا

## د فکر پلوشه

پلوشه چې پری د فکر راخوره شوه
د پښتو لیلا مې لا پسی ښایسته شوه

دلیلونو په ما ستوری اثر وکړ
پخوانۍ مینه مې ځوانه شوه توده شوه

# د کونړ سیل

تیاري د ښکیلاک مې نوی دنیا به وینم
خپل کور کلی حجرې وطن رڼا به وینم

یاران به میلمانه کړم د حجرو منګي رباب ته
په ټنګ ټکور نغمو کې یار اشنا به وینم

څو ورځې به په کور یم بیا به لاړ شمه په سیل
دا غرونه د کونړ د شنا وخوا به وینم

د دنګو غرولمن کې چې د ژوند سندري وائی
د سیند د اوبو شور غورځې نڅا به وینم

چکر د سیند په غاړه مازیګر کې به وهمه
ګودر د سرکانو او جلالا به وینم

د حسن شاهزادګۍ چې د ګودر غاړی ته راشي
دا میره د ښایست او د ښکلا به وینم

رنګونه د ښایست چې کانو بوټو کې دیره دي
ویالې شینکي باغونه هره خوا به وینم

بلبلې چې ډاګونو کې د ګلو باغباني کړي
د ګل او د بلبل ناز او ادا به وینم

چې توره د خوشحال ئې جوړه کړی د قلم نه
تنر کې هغه ستوری د سبا به وینم

# فلسفي مینه

ستر ګو کې چې جوړ د ښایستونو تصویرونه شي
زړونو کې پیدا د مینې لوی لوی غورځنګونه شي

مستی کړي جذبې د زړه سور او ر د مینې بل کاندي
سیزي پرې خپل ځان تمام وجود ئې پرهارونه شي

عقل شي بې خود جذبه د مینې غلبه وکړي
مینه ئې ژوندون شي پاتې نور ترې ټول کارونه شي

عقل چې په خود شي منطقي هره خبره شي
مینه فلسفي شي منطقي ئې اصولونه شي

ستوری د خپل زړه مینه په عقل هم تللې ده
مینې د پښتو ته ئې پیدا ډیر دلیلونه شي

## ډالۍ

تال کې د زلفو دې تالۍ ورکړه
یار ته د سرو شونډو ډالۍ ورکړه

ملي خیالونه درنه مړاوي نه شي
ذهن ته رنګ د قامولۍ ورکړه

چې د پښتو ګلونه تل سمسور وي
پښتون ته حس د ورورولۍ ورکړه

د ازادۍ مللی مرام له پاره
ځواک هر یو ځوان ته د سیالۍ ورکړه

ستوری که شعر وي د لفظونو تصویر
رنګ د پښتو پښتونولۍ ورکړه

# سګرټ

تا چې ټول ځان خپل لوګی کړ د خپل یار نشي د پاره
پتګان له تا نه زار شه ای په عشق کې وفاداره

ستا عادت له نورو بیل دی نور چې کش شي نو اوړ دیږی
ته چې کش شي نو لنډ یږی سوځوی ځان سم دواره

ته په مینه کې ځان سیزی سوځیدو کې دی نشه شته
عاشقان دی نشه کړی مست خوشحال ګرځی خماره

په نشه کې د ژوند راز دی ته ددی راز ئې استازی
تا ستی کړ ځان په عشق کې سپلنی شوي د خپل یاره

ډیوه کله دا ستا سیال ده چې پتنګ ئې نشه نکړ
هسی اور کې سوزوي ئی د نشی ګرځي کناره

## زړه او د دماغ

قانـــون د طبیعــت دمــاغ روښــان شــي پیـژندلی
د پـوهی پـه رڼـا کـې حـال د ځــان شــي پیـژنـدلـی

دمــاغ چــې وي روښـانه که تـیاره تـمام جـهـان شــي
پـروا ئـې نـه شـتـه لاره بـیا انـسان شــي پـیـژنـدلـی

دمــاغ چــې وي تــیاره د زړه د حــالــه نـا خــبر شــي
نـه سـوز د قـام د مـینی نـه ارمــان شــي پـیـژنـدلـی

دماغ او زړه چــې یــو ځــای شـي روان غــاړه پـه غــاړه
دا ســتوري دي ګــواه کــور د جــانــان شي پیـژندلی

## زاهـــد ته

ازدئ پــــه قــــدر هـــلـه بــه ســم پــوه شــــی
کـــه شــرنــګــا د زلــونــو دی واوریــــدلـــه

شــپــه او ورځ بـــه ئــی عـــبات کـــوی زاهـــده
کـــه زمـــا لـــیلا پـــښتـو دی ولـــیـدلـــه

# توره او قلم

د فن په ژبه سربازي د پښتونخوا واخله
توره قلم دې د خوشحال خټک بابا واخله

د سربازۍ ډکر ته ځی چې چیری تږی نه شي
شربت د شونډو پر یمانه خامخا واخله

مینه د قام کی د همځولو ځنی پاتی نه شي
د قامولۍ بیرغ پــه ډاګه بر ملا واخله

چې باغیچې د پښتونوالي پرې زرغونې شي بیا
او چت ګامونه د ژوندون د پرمختیا واخله

د مرګ قاصد ته ستوری وائی دا پښتو به کوې
چې مې ازاد ژوندون سیل وکړ بیا مې سا واخله

# پښتو

څه حاجت زما د مینی د بل چا شته
چې پښتو د ښایست میره مې لیلا شته

پت، ښیګړه، توره وررولی ئې هډ دی
دا خویونه په پښتو کې په رښتیا شته

او چې ننګ ورسره مل شي نو پښتون شي
د پښتون د نوم د تورو دا مانا شته

پښتونواله کې پیدا پښتو کې لوی شوم
پښتونواله کې مې ژوند او پر مختیا شته

ستورې خپل زړه څو څو ځله امتحان کړ
پکې مینه د پښتون او پښتونخوا شته

# د بخت ستوری

راته ښکاري حالت دي په بدليدو کې
او ښتون ذهني راغلی په ښتنو کې

اوازی دي د يوالی خپری شوي
اتنونه دي خوشحال بابا ديرو کې

د ارمان د اميدو غوټی به ګل شي
بيا به وټومبي ځلمی ګل په شملو کې

بيا واکمن به خپل وطن کې ښتانه شي
ښتونخوا نوم به شي ياد خپلواک ملکو کې

د ښتون د سوکالی وخت راروان دي
د بخت ستوری ئې ځليږي تورو شپو کې

# بېلتون

د عشق يو څو جامونه څکمه لا خومار نه يم
بېلتونه مه رادرومه تا ته وزګار نه يم

په پښتني مينه کې ځای د بېلتون نه شته دی
دلته پښتو چليږی د بل قانون نه شته دي

د وفا دود پالمه ياد جفا کار نه يم
بېلتونه مه رادرومه تا ته وزګار نه يم

ته عاشقان بيلوی د بدبختۍ نښه ئې
چرته چې سر ښکاره کړی د بربادۍ نښه ئې

ته د افت نوم ئې مل دی د لار نه يم
بېلتونه مه را درومه تا ته وزګار نه يم

پښتانه واړه يو دي يو ئې دی پت او وطن
خپل منځ کې تا نه پريږدي ته د وحدت ئې دښمن

زه د وحدت ستوری يم د بېلتون يار نه يم
بېلتونه مه رادرومه تا ته وزګار نه يم

## ریالیست

چې د زړه د ارمان تول وشی مغزو کې
ریالیست شی زړه د عقل دلیلو کې

ریالیست شه د امکان سره ګام واخله
چې پیدا شي ترقی ژوند پښتنو کې

چې زما ښکلی وطن راته سمسور کړي
پښتانه د سیالۍ سیال شي اولسو کې

بیا حجری د قام تودی په ټنګ ټکور شي
د پښتو او پښتونوالی په نغمو کې

په اسمان کې میلی جوړی شي د ستورو
د ژوندون د پسرلي خوږو وږمو کې

# د سترګو جنګ

تا چې ما ته په ناز ناز راوکتلو
ما خپل زړه دا ستا په سترګو وبايللو

ستا د سترګو تور زما د سترګو تور شو
زما خوښه شوه ستا خوښه د ليدلو

اوس چې هر لوری ته ګوری زه به ګورم
پاتی نه شو څه د سترګو جنګولو

ستا په سترګو کې جانانه څه اثر دي
په ستايلو ئې شوم، د خلکو د ستايلو

تورو زلفو په تورتم کې رڼا مخ دی
د سبا ستوری ښکاريږئی په ختلو

## سربازي

ننګ خو د پښتون د ژوند ملګري دي
ځي د ننګ ميدان ته ننګيالیان بچي

وخت د سربازۍ ستوري راغلي دي
سر، سره کړي لوبي سربازان بچي

## غوښتنه

د ژوندون په ملي بڼ کې ګلان غواړم
د مينو په محفل کې ياران غواړم

چې حجرې د پښتنو پرې شي راګرمي
د منګي او د رباب فنکاران غواړم

ملخان او ګونګتهان مې پکار نه دي
د ډيوي او د رڼا پتنګان غواړم

چې په ورځو کې رڼا کوي روان وي
هغه ستوري د سبا د اسمان غواړم

# پښتونخوا

مونږ پښتانه یو ځانته خپله پښتونخوا غواړو
سیاسي تاریخ ژوندی کوو نوي دنیا غواړو

پښتونولی پالو مونږ
اولسولی پالو مونږ
ټولنولی پالو مونږ

وروری منو د غلامۍ نه وتی سا غواړو
مونږ پښتانه یو ځانته خپله پښتونخوا غواړو

دا خپل وطن خپلوو
دا خپل چمن خپلوو
دا خپل ګلشن خپلو

په خپله خاوره کې خپل واک اقتدار بیا غواړو
مونږ پښتانه یو ځانته خپله پښتونخوا غواړو

د خوشحال خان بچي یو
د میرویس خان بچي یو
د ایمل خان بچي یو

د باچا خان په لار روان ستوری رڼا غواړو
مونږ پښتانه یو ځانته خپله پښتونخوا غواړو

## هدف

هدف د پاره لاری په ډیر غور لټوه
لار د پاره خپل هدف مه بدلوه

که د ستوری سلا اوری عملی لار ونیسه
که لنډه لار نه وی په اوږده لار ورځه

## بنګړی

خوشبوی د لونګین دی کړم بی خوده
چې په خود شومه نغمه مې واوریدله

دا نغمه دا ستا د لیچو د بنګړو وه
پښتنه وه په پښتتو غوږ ته راتلله

# بــې وطنــه بــاچـــا

تـش جــامـــونـه چــې بلـــهـا شــي نــو پـرى څـه
دا مـحفـل چـې بـــې اشـــنـا شــي نـو پــرى څـــه

چــې ئـــې واک اخـــتـيــار زمـا پـه لاس کې نه وي
کــه دا ټــول جــهـان زمــا شـــي نــو پـــرى څــه

چــې ئــې لـيــچـو کــې اغـيــار کــوى خـوبـونـه
داسـى ښـکـلـى کــه لــيـلا شـــي نـو پــرى څـــه

چـې ئى قـــدر پـــه خپل کــور کـلـى کـې نــه وي
بـــې وطـــنــه کــه بـــاچـــا شـــي نـــو پـــرى څـــه

زور هــغــه دى چــې د خـــپـلـو مـــټـــو زور وي
چـې ئـې زور پــردى، امــسـا شـــي نـــو پـــرى څـه

سـتـورى سـتـا د رنـځ درمـــل کـولـــى نـــه شـــي
دا طـبـيـب کـه مـسيـحـا شـــي نـــو پـــرى څـــه

# د مینو قبله

ذکات د مینی یارته ورکولو کې ثواب دي
ارمان د مین زړه پوره کولو کې ثواب دي

پرهیز له سرکو شونډو محبت کې ناروا دي
سرې شونډې مچوه په مچولو کې ثواب دي

چې غل د محبت شي د ښکلا په نندارتون کې
روا ورته دا غلا ده غلا کولو کې ثواب دي

وطن باندې مین یم پښتونخوا مې معشوقه ده
په عشق کې د وطن سر ځارولو کې ثواب دي

دا ستوري د اسمان ئې له ښایسته رڼا اخلي
قبله ده د مینو په لیدلو کې ثواب دي

# تـــا بـــه څـــه ویـــلـــی مـــاتـــه

چې تـنـکـی مازیګری وی لـمر قـابـو په پریوته وي
او یـو بڼ وي د ګـلـونـو بـس یـوازی زه او تـه وي

جـذبـه ګـرمـه وي د زړونو عـقـل تللی وي بـیـد یا تـه
تا بـه څه ویـلـی مـاتـه، تـا بـه څـه ویـلـی ماتـه

تـا بـه مـاتـه ویـل سـنـدری د بـلـبـلـو
کـه دردونـه د وطـن د غـم ځـپـلـو

کـه دی ویـلـی کـشـالـی د ژونـد کـړه شـاتـه
تا بـه څه ویـلـی مـاتـه، تـا بـه څـه ویـلـی ماتـه

تا بـه مـاتـه د مجـنـون لـیـلا کـیـسـی کـړي
کـه د ژونـد د نـاکـردونـه دی ګـیـلـی کـړي

کـه دی ویـلـی خـولـه سـاتـلـی مـې ده تـا تـه
تا بـه څه ویـلـی مـاتـه، تـا بـه څـه ویـلـی ماتـه

تـا بـه مـاتـه ویـل د مـیـنـی داسـتـانـونـه
کـه د قـام د نـنګـیـالـیـو تـاریـخـونـه

کـه دی ویـل سـتوری وطـن مـه پـریـږده چا تـه
تا بـه څه ویـلـی مـاتـه، تـا بـه څـه ویـلـی ماتـه

# ګـــودر

هیلي شوي پیغلی په وربل کې ګل ټومبل غواړي
منــګــي په سر دی د ګودر غاړی ته تلل غواړي

د عــاشــقــانــو نــنــداری او تـــمــاشــی د پــاره
لـنـډی بــازار د مـــنــګــو ټـیــو جــوړول غــواړي

پـښـتون ځـلـمـی ته چې نـشه د ازادۍ ورکــوی
هــغــه مـنـګـــی ورتـــه پـــه لـپـــو ډکـول غـــواړي

د مــنــګــو شـور ئي بـوډاګــان هـم بـه مـستۍ راولـی
پــه سرو مـنـګــولو چې منګی غـوپه کـول غـواړي

چــې د څـوکـۍ او سـرکاڼو مازیـګری پـری تـودوي
ســـتوری غـــزل کــې د ګــودر غــاړه ستایـل غواړي

# د سولی لار

په ناسته نه شی خوځیدل غواړي
څوک چې منزل ته رسیدل غواړي

په تش خبرو باندی کار نه کیږي
کار په کولو شي کول غواړي

لږ دی مجهولو نه معلوم ته راشي
که عملی ګام اخستل غواړی

یو والی شرط دی ازادئ د پاره
که پښتونخوا ازادول غواړي

لار د یو والي دی په نښه کاندی
که د ژوند ناوی راوستل غواړي

د ستورو درومي قافیلی درسره
که لار د سولی باندې تلل غواړي

## مـصـــري خـــان خـــاطـــر

خـاطــر نــه مــرى شــعـر ژونـدى ئــې په جهان دى
هـــر يـــو بـــيـــت ئـــې اولـــسى ســـاده روان دى

خـــاطـــري بـــه د خـاطـر وى تـــل خـــاطـــر كـــې
چــــې جـــوړ كـــړى د غـــزلـــو گـــلـستـا دى

كـــه خـــاطـــر د رقـــيـــبانـــو خـــاطـــر نـه كـړى
خـــو خـــاطـــر د مـيـلـمـــنـو كـــړي قـــدردان دى

د خـــاطـــر خـــاطـــر پـه ســتوري ځـكـه گـران دى
چې خـيـــبر ئـــې پـــه مـســـرو بـــانـــدى ودان دى

# لوړ پښتون شپې!

تش خیال نه دی مادي چېرته اوریدلي
پښتنی مور ځوی ته دا سې دي ویلي

پښتو ویل، پښتو لوستل، پښتو لیکل به کوې
ځما بچیه لوی پښتون شې پښتو تل به کوې

پښتو د پت ښیګړې توري او وروري نوم دی
په پت کې ژوند په پت کې ناسته ودریدل به کوی

ښیګڼه ژوند د پښتنو کې ټولنیز قانون دی
ښیګڼه هر چیرې بې تمې بې بدل به کوې

په توره یاد مونږ پښتانه د ډیر پخوا نه یو
توره به نن توره سبا، توره هر ځل به کوې

وروري د ځواک او د ژوندون د سوکالۍ نښه ده
وروري کول وروري پالل وروري ساتل به کوې

چې پښتونخوا ته پسرلی د پښتونوالي راوړی
په زړه کې ساته پام د ستوري په غزل به کوی

## د پښتونوالی فلسفه

بنسټ دی د ژوندون د پښتونوالی فلسفه شي
لمن دی د ادب د خوشالو ګرمه دیره شي

اولس دی ځوریدلی خو ژړا باندی څه نه شي
پیدا دی دی اولس ته د خندا یوه شیبه شي

درمل د ځوریدلو انسانانو په امید شي
امید دی د ژوندون د سوکالۍ ورته تحفه شي

امید د خوشحالۍ او سوکالۍ چې زړه کې نه وي
انسان نه مړی جوړ شی ځای ئی ګور او هدیره شي

دا ستوری د پښتون د خپلواکی به هله روڼ شي
چې واړه پښتانه په یو مرکز تول شي جرګه شي

# خـــــــوښـــــــنه

د ایمــل خــان ســتوری نــه چــې پخپــل کمپــوټر ئــې ددی کتـــاب شـــعرونه لیکلــــی او هـــم ئـــې د کتـــاب نـوم **ژونـــــدی خیالونـــــه** غـوره کـړی د زړه د کومی ځانګړی خوښنه کوم.
د پـــښتنو شـــاعرانو او لیکوالانـــو د ټـــولنی د منلـــو ملګـــرو مبـــارز ځـــاپی او عریـــز سرشـــار نـــه ډیـــره مننـــه چـــې د کتـــاب د شـــعرونو پـــه لوســـتلو او سینګار کې زیار ویستلی دی.
د بــصیر خـــان ســـتوری نـــه چـــې د کتـــاب د چـــاپولو کـــارئې او د نـــسیم خـــان ســـتوری نـــه چـــې د کتـــاب د چاپ لګښت ئې پغاړه اخستلی مننه کوم.
د انجینـــــر عبـــــدالخالق نـــــوری نـــــه ډیـــــره ډیـــــره خوښــنته چــې پــه وړیــا توګــه ئــې د خپــل کمپــوټر د پـــښتو پروګـــرام د راکولـــو او پـــه کمپـــوټر کـــې د اچولـــو پیرزوینـــه کـــړی او د کتـــاب د لیکلـــو د پاره ئې تخنیکی امکانات برابر کړی دی.

ډوکتور کبیر ستوری

جرمنی 05.04.1997



ډوکتور کبیر ستوري
دپلوم ساپوه

کبیر ستوري د ساینسي پوهنوډوکتور (Dr.rer.nat.) دپلوم ساپوه (Diplom-Psychologe) په هلې پښتون په ټبر میردادخیل چې د پښتنو د یوسفزو د پرګنې پورې اړه لري. ستوري د لعل محمد خان ځوی او د بري پښتونخوا د کونړ د تنر په کلي کې په ۱۳۲۱/۱/۱۷ ل.هـ کال (06.04.1942ع) ځیږیدلی دی.

ده خپله لومړنۍ زده کړه د خاص کونړ په لومړني ښونځي او په کابل کې د رحمان بابا په لیسه کې او خپله لوړه زده کړه د جرمنی د فرانکفورت، کولن او د ماربورګ په پوهنتونونو کې د ساپوهنې (Psychology) په څانګه کې چې فلسفه (Philosophy) سیاسي پوهنه (Pol.Science) اوټولنپوهنه (Sociology) ورسره مل وه سرته رسولې ده. ستوري پښتون سوشل ډیموکریټ دی او د شاعرۍ په نړۍ کې تر ټولو زیات د پښتو د ادب د پلار اجمل خټک نه الهام اخستلی دی.

د پښتنو د یووالي، خپلواکۍ او سوکالۍ د پاره ده ته د باچا خان نظریو ژوند وربخلی دی.